

زموږ محبوب تو اواك اعلیحضرت محمد ظاهر شاه
داستقلال ساتندوی



اعلیحضرت محمد نادرشاه شهید استقلال محصل

# دجوزا شپږمه

درو ځلو یښت کاله له د مخه پر شپږمه دجوزا زموږ سیاسی استقلال د یوه امپریالست دولت له خوا ومنل شو . استقلال زموږ د نیرو پلرو او نیکه ګانو د توری په زور اودوینو په بدل کښی په لاس راغلی دی پدې ځای کښی هر وطن پرسته افغان مجبوردی چه د استقلال د لاری د شهیدانو پهروح زر ګونه سلامونه دتحفی پهډول ولیږی پهزیاته بیا داستقلال دلاری دحقیقی قهرمان محمد نادرشاه شهید سعید وپاك روح تهدرنه له کومی درودونه تقدیم کړی لیکن اوسنی نسل ته په کار دی چه هر کال داستقلال دورځی دنمانځنی پهمناسبت د خپل ځان سره غور وکړی چه موږ په دې دروځلو یښت کاله کښی داستقلال دمعانئ اوحقیقی بقادپاره څومره کار کړی دی ملی آزادی خو دملتونو دافرادو طبیعی او مشروع حق دی اما ددی رواحق پهمخ کښی افراد درنی وظیفی هم لری . کله چه داوظیفی

(نور د پښتی په دریم مخ کښی وګوری)




# کندهـــــار

میاشتنی خپرونه

ادبی، تاریخی، اجتماعی، علمی

مسئول چلوونکی:- ا، م «کرزی»

اداره د هرات دروازه «د دولتی مطبعې څنګ ته»

بیه :- په کندهار کښې [۲۸] افغانۍ
په نورو مملکتونو کښې [۳۲] »
په د باندنیو مملکتو کښې [یو دالر]

د لمریز ۱۳۴۰ کال د جوزا [۱]
د میلادی ۱۹۶۱ کال د می ۲۲»

د دوهم کال د ربعه ګڼه
پرله پسې ۱۵ »

# دکندهار دمجلې

## دمضامینو فهرست

# ادب باید د اجتماعي ژوند

## تصویر وي

داچه د ژوندانه په ټولو شئونو کښې ښکاره تحولونه او څرګند تغییرات راغلي دي علت ئې دادی چه بشري ذهنیت بدل شوی او دافکارو مجری الیشه سوی ده . څرنګه چه ټول علمي او مدني نهضتونه د انساني دماغ محصول دي او دماغونه تل د تجدد ، تحول ، او انکشاف خوا ته مائل دي ، نو باید په اجتماعي لارو ادبي او ذوقي حالاتو کښې هم بدلون راشي . انسان خو په لوی سر کښې پر تجدد او تحول زړه بایللی دی تکرار او زاړه شیونه ئې زړه توروي او تل په دې هڅه وي چه نوی مضمون ایجاد او نوي اړ په سازه کړي .

د نړیوالو په دماغونو کښې خوځو پیړیو د مخه تحول او انکشاف راغلی دی چه د غه دی نن ورځ د خپلو علمي اختراعاتو په برکت غواړي د آسمان وستورو ته وخیژي . د تاریخ په شاهدي سره د دوی د غه فکري او دماغي تحولونه او مړي د دوی په ادبي او هنري اثرو کښې ښکاره شوي دي د اروپا د تاریخي مطالعاتو څخه دا موږ ته څرګندېږي چه د فرانسې د انقلاب پېړۍ د اوی نهضت څخه وروسته څه ډول د رومانتیک ښوونځی پیدا شو او دې نوي مکتب څرنګه کلاسیکي سبک له منځه یووړ . نو اوس موږ ته هم لازمه ده تر هغه ځایه پورې چه زموږ اجتماعي ژوند او ملي شعائر ئې د زغمو او حوصله اري په ځینو هنري او ادبي چارو کښې څه بدلون او تجدد راولو .

که موږ د ادب داسې تعریف وکړو چه د انسان د باطني خواهشاتو او تاثراتو مجموعه ده نو دا به د اوسني ادب د پیژندګلوۍ د پاره پوره مثال نه وي او که ادب د انساني ژوند د مظاهرو او اجتماعي حالاتو تصویر شي نو دا به ولسي ادب وي او څرنګه چه ادب د پاره د ادب په بشري ټولنو کښې مصداق نه دی پیدا کړی او تل د اجتماعي قدرتونو له خوا ادب استعمال شوی دی نو ځکه اوسني نقادان هغه ته د اهمیت په سترګه نه ګوري او غندي ئې او که چیرې ادب د قدرت د خاوندانو د خوښۍ د پاره د دوی د ښکلو ماڼیو او باغونو یاد دوی د پېړ مخو ستاینه وي نو ښائي دې به د فئوډالیزم په زمانه کښې طرفداران درلودل اما نن ورځ هغه زړه متاع رانیونکي نلري ادب چه د تاریخ په سیر کښې بېلې بېلې دورې اخلي قبیله لوی ادب ، درباري ادب عشقي او دیني تا به ادب تېرې کړي او څرنګه چه د غه ټول ادبي مسلکونه د زړې زمانې د ژوندانه ، دودونو ، او فکرونو ترجماني کوي ځکه

نې په اوسني دنیا کښې چه د ترقي او تجدد زمانه ده خپل قیمت بایللی دی. حتی د تصور او تخیل منابع او اساسونه ئې بیخي له مینځه تللي او نابود شوي دي په نننی عصر او ژوندانه کښې موږ نسو کولای چه تیری سوی ادبي خاطری راژوندۍ کړو او د هغه مواد څخه چه ارغونو د ادب د ماڼۍ د جوړولو دپاره په کار وه ل موږ هم استفاده ځني وکړو. ځکه اوس د ژوند ټول ارخونه بدل شوي او د تصور او تخیل مجری هم سره اوښتي ده د مثال په ډول ویل کېږه اوس یو شاعر راولاړ یږي په داسې حال کې چه کوم ګران اشنا ئې د الوتکې په ذریعه مسافرت ته تللی او دی د الوتکو په ډګر کښې د خپل اشنای د خدای په امانۍ دپاره ولاړ وی او دالوتنې په حالت کښې دا شعر ووائي: چه

ای ساربان آهسته رو کارام جانم میرود
آن دل که با خود داشتم با کاروانم میرود

څو نی به د خندا وړ خبره وي ځکه نه ساروان دلته موجودیت لري او نه کاروان دارښ پر ځای ګرندی الوتکه ده او د ساروان پر ځای یو مفشن طیاره وان څرنګه چه هر ادب د خپل عصر د ایجاباتو او د اجتماعي ژوند د چاپېر محصول دی او لکه چه موږ په اوسني عصر کښې د توری په وسله سره د جنګ و میدان ته نه سو تلای دغه رنګ زوړ ادب هم زموږ ذوقی اړتیاوی نه سی پوره کولای. او موږ په اوسني عصر کښې یوه داسې ادب ته ضرورت ارو چه هغه زموږ د اجتماعي ژوند او ولسي حیات ترجمان او ښکارندوی وي یا په بل عبارت باید زموږ د اجتماعي ژوند داسې پوره هینداره وي چه په هغه کښې موږ ټول خپل ځانونه او خپل اخلاق او د ژوند څرنګوالی ووینو او خپلې حقیقي ښې وبیژنو او د اوسني مترقي ژوند له مظاهرو څخه الهام واخلو.

ددې پر ځای چه د خیال مرغه د آسمان په ستورو کښې الوزوو باید چه زموږ سره د زړه خواله کوو ښه به داوي چه د خپل ولس په زړه کښې ور ننوزو او دېوه کړي دباره هغه دنیا هم ووینو کوم چه تل زموږ له سترګو نهامه پاته شویدي بیا او د ژوندانه نابلوی تصویر کړو یعنی له اسمانه څخه باید مځکې ته راسو او د تصور له فضا څخه باید د واقعیت وغولی ته را شیوه سو، چه هم ادب په اوسني تعریف سره خپل مصداق پیدا کړي او هم به موږ په اوسني عصر کښې خپله وظیفه پر ځای کړي وي که چیری زموږ ځوان فکره ادیبان او د قلم خاوندان دا کار وکړای شي نو دا به د دوی غټ بریالیتوب او ددې جامعې لوی نیکمرغي وي.

«ا، م، کرزی»



د ښاغلي محمد علم د بخرکي ترجمه

# مورخ او وقایع نګار

د پروپیر پوراهیسي مورخان او فیلسوفان په دې بحث بوخت دي. چه معلومه کي د تاریخ وظیفي څه دي؟

لکه څرنګه چه موږ د مخه ویلي دي. تر څو چه د تاریخ صحیح تعریف و نه سي دا جګړه به دوام پیدا کي.

هر مورخ واقعات پر خپل دول وړاندي کوي یو مورخ تاریخ لیکي، خو هغه بل مورخ کوروټ د هغه د تاریخ څخه د تاریخ له حیثه انکار کوي. کله چه کرم مورخ د کومي زماني حالات دا ډول ولیکي چه د هغه څخه معلومه سي چه د هغي زماني خلګو څرنګه ژوندون تیراوه د دوی د چړنو او ږدوالي څرني ؤ دوی به څنګه ځایو کي اوسیدل، هغوی ښارونه آبادول او کله به ئې ښارونه ورانول. کله به د هغوی پادشاهانو کتابونه لیکل او کله به ئې کتابونه سوځول دا رنګه مورخ ته موږ وقایع نګار وایو زموږ او مړني مورخان د غه رنګه وقایع نګاران ؤ سره د دې چه د تاریخ متعلق نوي نظریئې قایمي سوي دي خو د هغه وقایع نګارانو د کتابو د ښه والي څخه انکار نه سوای کیدای ځکه چه زموږ د استفادې مورد هغه کتابونه سوي دي، که څه هم دوی د دې د واقعاتو د اسبابو او نتیجو سره اړه نه درلوده او ځانونه به ئې بیغرضه تراشل او د خبر رسوونکو په شان به ئې وظیفه ادا کوله واقعات به څرنګه چه پیښ سول هغه رنګه به ئې ولیکل دا وقایع نګارانو به د واقعاتو په اسبابو پسي پلټني نه کولي په تاریخ او وقایع نګاری کښې دا فرق موجود دی چه وقایع نګار همیشه د واقعاتو د اسبابو څخه غافل وی، لیکن مورخ نه یوازي د مخصوصي زماني د حوادثو اسباب وړاندي کوي بلکه د انسانانو تاریخ یو مسلسل عمل بولي مورخ ته علاوه پر دې چه د واقعاتو اسباب ور معلوم وي دا هم ورته ښکاره ده چه بشر څرنګه ترقي او پر کومه لار تنزل کوي.

تاریخ موږ ته دا راښیي، چه په کومه خاصه حادثه او واقعه دنیا د ترقي و خوا ته ځي او کومه واقعه انسانان و کښتي ته بوتله.

د وقایع نګار دا کار دی، چه د ۱۹۳۹ کال د جنګ په باره کي موږ ته د بري او شکست حال راکي، او د هغه جرنیلان حال راکي چه په دغه جنګ کي جنګیدلي دي وقایع نګار موږ ته د اوپو او پو لار ښوونکو وینا وی بیله کوم تنقید څخه موږ ته راورسوی لیکن پر خلاف د دې مورخان د جنګ اسباب او د هغه اثرات چه پر اجتماع باندي لوېږي بیانوی و مورخ ته دا ضروری خبره نه ده چه دی وقایع نګار هم وی، مګر د وقایع نګار د کتابو په پر ته دی تاریخ هم نسوای لیکلای.

## هغه علوم چه د تاریخ سره اړه لري:

لکه څرنګه چه تاریخ د عمرانی علومو یو ښاخ دی، ځکه لازمه ده چه د نورو ښاخو سره هم تعلق ولري، د تاریخ علم تر ټولو زیات د سیاسیاتو سره اړه لري، د سیاسیاتو څخه زما مطلب صرف د حکومت پالیسي او د حکومت طرز جنګ کول او د حکومت نظم شامل ندی بلکه د اجتماعي ټولنو ډیری اداري تر دغه عنوان لاندې راځي.

په موجوده وخت کې د تاریخ ډېر تعلق د معاشیاتو سره دی، دې تعلق چه کوم نوی تاثیر د تاریخ پر وجود کړی دی هغه به په آخر نیو پاڼو کښې ولولی د مورخینو خیال دی چه په اجتماعی اوږتیا کښې معاشیات ډېره مهمه برخه اخیستې ده، نن ورځ د انسانانو په مخ کښې د ژوند مسائل وړاندې شوي دي مورخان یعنی هغه کسان چه تاریخ لیکی د دغو مسائلو له مخې د نورو معاملو مطالعه کوي، د دغه سبب دی چه نن ورځ معاشي تاریخ تر جنګي، سیاسي، او نورو تاریخو ډېر اهمیت حاصل کړی دی.

په تاریخ لیکلو او جغرافیه کښې هم اوس بیخی نژدې والی ایدل کیږي. ښائي چه پدې تعلق دی تر ټولو د مخه د عربو عالمانو پوهیدلی وی، ډېرو عربو مورخانو داسې کتابونه لیکلي دي چه هغه ته موږ تاریخي جغرافیه یا جغرافیائي تاریخ ویلای شو، د عربو عالمانو څرنګه چه جغرافیه په عمرانانو کښې شاملوي ځکه نو جغرافیه یوازې د مځکې علم نه شو بولای بلکه یو انساني علم ځنې جوړ شو، یعنی زمان او مکان دواړه په جغرافیه اړه پیدا کړه.

د تاریخي جغرافیه اوسنوکی پدې کوشش اګیادی چه د انسانانو د اجتماعي ادارو تأثیرات د آب و هوا څخه دی. یعنی دوی دا کوشش کوی چه دا ثابته کی چه د انسانانو اجتماعی خوی او خاصیت جغرافیائي آب و هوا ورته کړی. دا یو ډېر د حیرت وړ کوشش دی، چه تر اوسه پر دې موضوع کوم ښکاره تنقید نه دی شروع شوی ځکه دوی ته دا حق نه حاصل دی چه دوی د ارغونی ملکو خدایان هغو ملکو د جغرافیائي چار پیر تخلیق بولی او یا دغه رنګه په نورو چټیاتو اګیار اوسی مګر سره له دې تاریخ د محیط د تاثیر څخه وتلای هم نه شوای.

## سوانح نگاري :

لکه وقائع نگاري سوانح نگاري هم په تاريخ خطا کيږي ، سوانح ليکونکی د يو مخصوص وخت تاريخ د هغه وخت ارغښتلو او هوښيارانو پوري محدودوي د کارلائل «انقلاب فرانس» د سوانح نگارۍ ډېر ښه مثال دی د دې ډول تاريخ په حمايت کښې چه هغه د سوانح نگارۍ پر طرز ليکل سوی دی ول ډيورنټ په خپل نامتو کتاب کښې چه نوم ئې «د مشاهيرو ادب» دی ليکلي دي .

په ځوانی کښې کومو تصورانو چه ژوندون ته رنگ او خوند ور کړی او د هغو شخه يو تصور په داسپين ږيرتوب هم راسره موجود دی ، او هغه عبارت دی د غښتلو کسانو ډېر گرانښت او يا شرمناك گرانښت په يوه داسې زمانه کښې چه تول شيان سره سپميږي ، او هيڅوك د هيچا احترام نه کوی زه د کارلائل سره هم د، پښم او ځم د افلاطون د بت ومخ ته خپل څراغ بلوم . د شرمناك توری مې بدې سبب استعمال کړ چه ئې دا خبره د خاطر داری خلاف ده چه زه به تاريخ او يا به سوانح کښې ترجمانو د شخصيت و منم زموږ د ډېرو گرانو دعوه نه يو الحی رای ور کونکی بلکه ليډران ئې هم سره مساوي کړه . زه دا خبره په ډېره خوشحالی ښکاره کوم چه زموږ د عصر هوښياران او پوهان د معمولي قابليتو انسانان دي.

په موږ کی ډېر کسان دا غواړی چه د پخوانو اوړه پرستش او ستاينې له منځه يوسي ځکه چه دوی ويريږي چه چيري هغه زاړه خدايان بيا را نسي او موږ تر تاثير لاندې راولي .

داشونی طبيعي خبره ده چه موږ د هغو کسانو احترام و کو کوم ته چه قوم په احترام گوري مگر بر خلاف د دې موږ و سپوږمی او ستورو ته د حيرت په سترگه گورو او احترام ئې کوو حال دا چه د طبيعت لويه معجزه خپله بشر يعنی انسان دی موږ بايد بخپله د انسان لمانځنه و کړو او دغه کسان د تاريخ روح دي د غه کسان دي چه سياست اوی اوی فابريکي ور ته هيڅ ښکاره کيږي .

دا انسانانو صحيح تاريخ د شيانو قيمتونه ، انتخابات او د جنگو تاريخ نه دی او نه تاريخ د عوامو خلکو په روش کښې پټ دی .

دا انسانانو تاريخ عبارت دی د هوښيارانو شخه د فرانسې تاريخ د فرانسويانو تاريخ ندی يعنی د هغو فرانسويانو چه بزرگان دی، يا موچی چه ئې گنډي او دغه رنگه نور ، ځکه دغه رنگه انسانان په هر مملکت کښې موجودوي نو ځکه زه دا جرئت کوم چه ووايم چه د فرانسې تاريخ يو يادداشت دی د هغو او هوښيارانو کسانو د ښو کارنامو ، د هغو کاشفانو ساينسدانانو ، مصد برانو ، شاعرانو ارتستانو او نورو چه زمانه ئې جوړه کړيده .

او هم دغه رنگه وضعيت په توله نړی کښې دی .

د فرانسې تاريخ د هغه مملکت د لويو انسانانو تاريخ دی !

دغه وجه ده چه زه تاریخ د
سیاست او چور وچپاول وچه
منظره نه بولم، بلکه د هر ښیار انو
یو کشمکش ئې بولم.

چه مقصد د هغه انسان او
دنیا پیژندل دی. پر هغه باندی
قابو راوستل او بیرته دوباره
تعمیرول دی.

که د لوستونکی په ذهن
کښی تراوسه پوری د تاریخ او
وقائع نګاری فرق موجود وی
او دی د پورتنی شکایت څخه
دا ګټه د پورتنی تر تأثیر لاندی
نوی نو هغه په ډیره اسانی سره
پوهیدلی شی چه سوانح نګاری
او تاریخ څه فرق لری، د لویو
انسانانو د کارنامو څخه څوك
انکار کولای شی؟ سوانح-
نګاران دا لوی انسانان بیخی
ما فوق البشر ښئی حال دا نچه
مؤرخان د لویو انسانانو د
کارنامو پر اسبابو او نتائجو
باندی بحث کوی سوانح نګار
کوښښ کوی چه خپل غښتلی
«هیرو» د یوه مخصوص عهد
غښتلی و بولی پر هره زمانه
او د هری زمانی د پاره ئې
موزون ښئی سقراط د خپلی
زمانی یو باغی او دده دا بغاوت
خلکو د اتن د مخلمیانو د پاره
خطرناك و باله دی مجبور سو
چه د خپلی دی عقیدی په سبب د
زهرو پیاله نوش کی. لیکن
باوجود د دی سقراط (د پنځمی
پیړی د مخه تر میلاد) د اتن
پیدا شوی انسان ؤ دده ژوندون
دده عقاید او مقاصد د اتن
د سیاسی او معاشی نظام څخه
پیدا شوی وو دی په حیث د
یو یونانی ژوندی ؤ او هم یونانی
مرسوده هر څه ژوندون چا و کی
دا ژوندون ده نه د روم په
سیزرانو کی نه سوای پیدا
کیدای.

که دی په موجوده یورپ
کی پیدا سوی وای ښائی چه
په کوم اخبار کی به دده
خبر نه سوی وای او په دونی
اهمیت به نه وای ورته قایل
سوی د سقراط د نابغه والی څخه
انکار نسوای کیدای مګر
دا نبوغ د پنځمی پیړی قبل مسیح
نبوغ دی او دده نه مرز د هغه
وخت نابغه و بللای سو په ساده
توګه سره تاریخ د بشر د ماضی
قصه ده یو څوك را ولاړیږی د
بشر د ماضی مطالعه د یوه فرد
په حیث کوی. که څه هم دا
موضوع ډیره لویه او مهمه
ده مګر زه وی ته تاریخ
نسوای و بللای دا موضوع د
حیاتیاتو سره اړه لری.

ډیر کسان چه په هغو کښی
بعضی مشهوره مورخان هم
شامل دی، د انسان د ماضی
په مطالعه کښی صرف پر بعضو
اشخاصو باندی خپله توجه
کوی د دوی په خیال د یونان
تاریخ عبارت دی د هر کلز
د تقریرو، د سقراط د ژوندون
او د اسکندر د خوشحاله طبیعت
څخه دوی د هر ملك تاریخ په
لویانو او غټانو کښی پاتی،
د هغوی په نزد د انقلاب فرانس
تاریخ په بادشاه، ملکه میرابیو
لافی رابس دنیری، مارا دانتن
او په نپولین کښی موجود وی زه
دا قسم مورخان، مورخان نه
بولم دا سوانح نګاران یا د
روحیاتو پوهان دی دا رقم
خلك چه کوم وخت تاریخ
لیکی دوی په نظر کښی د
انسانانو اجتماعی خواوی نلری.

«نور په ۸ مخ کښی»

# رارسیـــ لیـك ـــدلی

ښاغلی «کرزی» د کندهار د مجلې چلوونکی!

د مطبوعاتو سره د (۱۸)، (۱۹) کالو اشنائي او په زیاته بیا (۱۴) کاله ملګری ودې حدته رارسولی یم چه د مطبوعاتو او موروني ژبې دیر لږ پر مخ تګ می خورا دیر خو شاله کوی د کندهار د مجلې په راوتلو او تاسیس چه څوك خوښ شوی وی لدغی دالی څخه به دریم یا څلرم سړی زه یم.

دا مجله می د لومړی ګڼې څخه بیا تر اوسه په غور کتلی ده د مجلې د مسلك سره ئې خپرونې برابری او به زده پوری دی.

یوشی چه زه ئې د مملکت په نورو خپرونو کښې کورت نه وینم او شخصاً د لته ستا په لیکونو کښې لیدل کیږی هغه د موصولی ضمیر کلیمه یعنی (چه) دی چه ستا په نوښتو کی ئې په (چی) سره اړولم.

پدې کلیمه دی لیکنی هر ګوره ښایسته وی ښه ته کی نه دی فکر شوی دی، زه دی هم پر خوا یم چه (چه) په (چی) سره ولیکل شی او نه پوهیږم چه څه له تر اوسه د (چـه) کلیمه په (ه) منل شویده په داسې حال کی چه په ځینو پخوانیو لیکنو کی هم (چی) په (ی) وی مثلاً قریب (۷۰۰) کاله دمخه د سلیمان ماکو د تذکرة الاولیا په قلمی نسخه کی هر ځای د (چه) پرځای (چی) راوړل شوی دی او پرته له دي د (چه) په تلفظ کی تر (ه) د (ی) نوری پوره ادا کیږی. زما چه فکر په رسیږی تر (چه) ئې د (چی) صورت معقول ګڼم.

نو د پښتو ټولنی د محترم ریاست او معاصرو لیکوالو نه ځینو ودې خوا ته غواړم چه آینده (چه) متروك او (چی) چه صحیح تلفظ په کیږی په کښه ومنی چه دا تائید به د موروني ژبې په حقله یو ادبی خدمت هم وی.

محمد یوسف (وبران)



# (د سناغلی «بریالی» له اشعارو څخه)

میخانهٔ :-

که به خوند سی څوك خبر د میخانی
ځان به خاك كړی پرګذر د میخانی

په سره اور کی به خلیل رنګه خوشنود سی
وی تاتو بی بلهٔ نی ور د میخانی

په هیڅ دم و به افسون به مغلوب نشی
څوك چه دم وی په منتر د میخانی

تر زاهد سل کلنی دیر بهتر بن دی
مستانه و قلندر د میخانی

افلاکو نه به له تاوه څه اوږ واخلی
که آه کش کړی منجور د میخانی

ظاهربین په اعتقا د ملامت نه وی
نا خبر دی په اثر د میخانی

په بوه غوړ پ چه نی مری ژوندی کیږی
ها تا ژه شراب ثمر د میخانی

عزرائیل به سر ګردان ور پسی مشه
«بریالی» پروت پر بستر د میخانی

چټی ستر ګی :-

چه نشی تیر شمه پر څنګ د چټو ستر ګو
نور فرنګ شمه په رنګ د چټو ستر ګو

وبا زار نه سر بهر ابستلای نه شم
کورڅ پاس اوری خدنګ د چټو ستر ګو

د ساغر شراب تاور را مملو میږی
چه نشه شو مه په بنګ د چټو ستر ګو

په تو به می هیڅ پر هیز ور څخه نه سی
زه بی ننګه کړمه ننګ د چټو ستر ګو

په بازو کښی می امکان دقتحی نشته
ښتو لی یم زه جنګ د چټو ستر ګو

د ځګر پر آینه می لا زیا تیږی
د تقوا پر صیقل زنګ د چټو ستر ګو

زره ښیښه د «بریالی» له لاسه ولاړه
ریزه ریزه شوه پر خرنګ د چټو ستر ګو

---

بلکه ددوی د لچسپی دانسان د شخصی کوا ئفو څخه وی دوی دانسان د ذهن هغه پرامه وخلکو ته ورووراندی کوی ، چه په هغه کښی یا چا ملکه ، جنګ او دانقلاب مناظر وجود داری .

دا کسان چه کومه تاریخی دوره او یاد کوم قوم تاریخ لیکی . نوځا هر آددوی موضوع دانسان د ماضی مره په اجتماعی صورت اده لری یعنی موضوع ددوی دانسان د ماضی اجتماعی خوا ده ، مګر باوجو د ددی دوی دلته هم دهغی دوری پر افرادو باندی بحث کوی ،

دا رقم سوانح نګاران او پوهان د نفسیاتو ډیر زورور آرت هان دی .

خلګ به ددوی ودي کسب او پیشی ته ډیر قدر ور کوی . مګر موږ ددوی د موضوع ته تاریخ نسوای ویلای .

(نور بیا)




# د کندهار

تولو ټنکی (هارونی)

یادونه او ستاینه د پخوانیو او اوسنیو شاعرانو له خوا

پښتو برخه :-

که باخه دی کندهار انار باخه دی
اسلم خان با بادی خوری برماترخه دی
«فتح خان»

درست پښتون له کندهاره تر اټکه
سره یو د جنګ په کار پټ او آشکار
«خوشحال خان»

بخارا او سمرقند می زړه زخمی کړ
غوارم پاڅم په زیارت د کندهار

❀ ❀ ❀

زه رحیم په بخارا کی آرزو کړم
که می خدای کړی پر بلاد د کندهار کړه
«عبدالرحیم هوتک»

هندوستان مکتب زما دی
کشمیر هم مطلب زما دی

کندهار د ګلو هار دی
هرات خوږ نسب څما دی
«خواجه رزق الله»

چه شاړه دی غمازانو له وطنه
نعیم ځکه کندهار او کابل و نیو
«میانعیم متی زی»

چهٔ تا نه وینم هغه زمان د ابره !
رانه اور شی پښت رود او کندهار ګل

نن می بیا به نیت نیولی کندهار دی
له هراته می خراب زړه تار بتار دی
«شیر محمد دهلمند»

تو ګل نه دعاو کړه فقیرا نو
زغ ئې نللی تر کشمیر او کندهار دی
«توګل دښپری»

دحنان قراری څه غواړی د لبره !
چه رسوا کړ دا سناعشق په کندهار کی
«میرزا حنان»

نن خپل زده ډانه زبل کندهار پربږده
دخزان له ظلم ؤ جوره ګلزار پربږده
«شمس الدین کاکړ»

نه په وی نه به پیداسی کندهار غوندی ولات
اوس ارمان می دی یار انوهیر بی نکرم به حیات
«خدایداد جدید»

دکندهار شاعران به سی راجمع پرمیدان
شاعر موسوم په عبدالله زتولو کم به راسی
«دسپین بولدك عبدالله»

ملیاران کړی هسی دیر په پښتو نخوا کی
په یکنیا به کندهار پهٔ ننګرهار کی
«مجاور احمدزیار»

پېښاور کی زښتهٔ دیر ښه ادیبان دی
کندهار کی بلبلان پر ګل کړیږی
«خیرالدین»

چه سرسبزی بوری ترلی دهٔدغې ولایت
ښه خوندور دی ارغنداو د کندهاره سره

❀ ❀ ❀

ښه نازك شنډان ئې ګوره اناری دی
نهٔ به وی داسی انار په کندهار کی

❀ ❀ ❀

شیر بن طبع به تلوار ورته را درو می
چهٔ د(قند) (اهار) ئې ور کی قندهار نه
«محمد یوسف ویران»

عبدالنبی ایدلی هندوستان وازه ښاروته
که زر کشمیر زرا کی کندهار نه بداوم
«عبدالنبی ګدا»

فارسی برخه :-

همتائی خوبی ونیکی همز دلبران
در شهر قندهار و به ملك هرات نیست
«شجاع الملك»

بهشت روی زمین شد به عهد او کابل
دهن کشوده بی خنده قندهار وانار
«ندیم»

خورسند باد هر که رودسوی قندهار
بیند به چشم خود رخ نیکوی قندهار
دائم دعای خیر کنند حافظ هرات
بر قندهار وخلق نیکو خوی قندهار
«حافظ هراتی»

دم عیسی است ګویا قندهار وسیر ګلزارش
که روح تازه می بخشد نسیم صبح بیدارش
«قندهاری ننګیالی»

نګار قند لب کورا بود در زلف سیصد چین
که او یك بت نبیند کس بچین و قندهار اندر
«هزار و یکشب»

## قومیالي پوهان

ښاغلی «نجیب»

# مرحوم مولانا ابوالکلام آزاد

دلویو شخصیتو مفاخر د کوم ملك او یا د کوم ځانه یوازی عاید نه بلل کیږی او د ټولو نړی والو مشترك مال دی یعنی د هغوی فعو له نصیبی څخه ئي ګرده مستفید کید لای شی ، دادیسن ، نیوټن ، لابلاس ، ژان ژاك روسو ، شکسپیر ، سید جمال الدین او یا نورو نوابغو او مختر عینو د علمی تتبعاتو او اختراعاتو له نتیجی څخه نه یوازی خپل هیوادونه ګټمن شوی دی بلکه د منفعت په اثر ئي موږ او ناسی ټول ښادمن شوی یو ، نو مولانا ابوالکلام آزاد چه په علمی تجربو او سیاسی مترتوب کو یو وتلی شخصیت ؤ یواځی نو کسانو څخه دی چه له یوی خوا څخه د استعمار او استثمار پیره د ژوند تر پایه پوری وجنګیدی او د شرق د وحدت په لار کښی ئي ډیری چغی ؤ بغی و وهلی له بلی خوا څخه ئي د تحریر او تقریر له لاری و علمی مجامعو او د علم و ادب و میدانو ته ښه اثرونه او موثري خطابی د یاد ګار په توګه پریښو لی چه تر ابد الابده پوری به دده محترم نوم ژوندی وساتی .



مولانا ابوالکلام

مولانا د سیاست په میدان کی د عدم تشدد د روبی د لاری څخه د ټولو نړی والو توجه و لحا نته جلبه کړی وه د کومی سیاسی مسئلی د حل د اثبات په وخت کښی ئي له مدللو دلائلو او سړې سینې څخه کار اخیستی یعنی تشدد او یا د بر تلوار کول ئي په کوم کار کی نا کامی او له مصلحته څخه

لیری کار باله، دقوی منطق او سیاسی پوهې له امله ئې د کانګرس دلیډرانو باور او باسرت په وخت کې ئې چا نظر به ور ردولای نشوای.

دهند جمعیت العلماء او یا نورو لیډرانو دده دقوی خطابې او رسا قلم په وجه د کانګرس له طرفه څخه رسماً ورته د ابوالکلام لقب ورکړی ؤ، مهاتما ګاندی به دی د هند دماغ او نهرو به ئې دهند زړه باله او دائماً به ئې ویله چه د مولانا په علمیت او اخلاقي متانت مې غبطه کیږی، جواهر لال نهرو دخپلو پلانو پیشرفت دده د دماغي افکارو محصول باله او ویردې باندی مفرؤ چه دی په علمیت او سیاسی پوهه کې په ګرده هند کې ساری نه لری کوپالاچاری به ددیوانا او سردار پټیل به دهند د لمر په لقب سره یاداوه او دائماً به ئې سره ویله چه مولانا هغه مواج بحر دی چه په زحمت او راحت کې یو دول تمکین لری. (مونټ بیټن) بیا یو ورځ په یوه علمي ټولنه کې دده حیثیت په دې الفاظو سره ښودی چه د مولانا ابوالکلام آزاد علمي منزلت خو وناسی ته زمانه معلوم دی مګر په سیاست کې یوه داسې جذابه او مرموزه قوه پټه ښی موجوده ده چه دعدم تشدد په سنه حربه سره هر دول قوی غلیم مغلوبولای سی.

مولانا په عصری او قدیمو علومو کې بوشانته معلومات درلودې د بند او خلاصیت په حال کې به په علمي تتبع بوخت ؤ. یو مبسوط تفسیر ئې د تفسیر القرآن په نامه سره دماتما په بندیخانه کې او نور ګټور آثار ئې د هند په مختلفو بندیخانو کې لیکلی دی چه د مضامینو دلوړتوب په لحاظ د قدر وړ دی.

**د مولانا زیږیدنه او تحصیل:-**

په ۱۸۸۹ ع کال په مکه معظمه کې زوکړی او کوچنیوالی ئې په عربستان کې تیره کړی وه، تعلیمات ئې په خصوصی دول پوره او تقریباً (۱٤) کلنی ؤ چه عربی شرقی او دیني تحصیلات ئې تکمیل کړه او عراق، مصر، شام، ترکیې او فرانسی ته ولاړ او دخصوصی مطالعی د لاری ئې دارو پا ئې ژبو او ادبیاتو متعلق علم لاس ته راؤست.

دمولانا سیاسی فعالیتو ته او دژوندانه نورو مراحل:- مولانا د پلار سره و هندوستان ته راغلی دی په ۱۹۱۲ ع کال ئې په کلکته کې د الهلال په نامه: یوې اردو هفته واری مجلی خپرول شروع کړه حکومت په ۱۹۱٤ ع کال ددې مجلی خپرول منع کړه او مولانا ئې په (رانچی) نومی ښار کې نظر بند کړ. تر خلاصیدو وروسته ئې په ۱۹۲۰ کال کې د خلافت او عدم تعاون په تحریك کې برخه واخیسته په نتیجه کې په (۲) کاله بند محکوم شو.

د ۱۹۳۰ څخه تر ۱۹۳۲ کال پوری د ملکی نافرمانی په تحریکونو کې ئې ډیر فعالیتونه وکړه او په نتیجه کې ئې بندی کړی وایدای په ۱۹٤۲ کال د اګست په میاشت کې ئې د (هند ایله کړی) په تحریك کې چه برخه اخیستې وه هم بندی

شو او د ۱۹۴۵ کال تر جون پوري بندي ؤ .

مولانا آزاد د ۱۹۲۳ کال او ۱۹۳۰ کال د کانګرس په خاصو اجلاسو کې چه په ډیلي کې به کېدل د رئیس حیثیت درلود په ۱۹۴۰ کال کې بیا رئیس شو تر ۱۹۴۶ کال پوري رئیس ؤ .

په ۱۹۴۲ کال ئې د کانګرس پارټي د (کرېپس میشن) په مجالسو کې د سر ناطق وظیفه هم اجرا کړل .

د ۱۹۴۷ کال په جنوري کې مولانا په موقتي حکومت کې داخل شو او د معارفو او فنونو د نماینده په حیث : ښاغلی آصف علي پرځای چه هغه واشنګټن ته په اوی سفارت ولاړ وټاکل شو په همدغه کال مولانا د پوهنې وزیر شو ، په ۱۹۵۲ کال د قدرتي ذرائع او سائنسي کشفیاتو د وزارت وظیفه هم ور ورغاړه شوه پر کال دمخه یعنې په ۱۹۵۱ کال کې د کانګرس د پارلماني پارټۍ مرستیال مقرر شو په ۱۹۵۲ کې په لسله عمومي انتخاباتو هم د دغې وظیفې مشر وټاکل شو .

په ۱۹۵۷ کال کې په عمومي انتخاباتو کې د (لوک سبها) د غړي په حیث د ګوړګان پنجاب څخه انتخاب شو ، په ۱۹۵۸ کې د هندو افغان د دوستۍ د ټولنې د ریاست عهده هم ور وسپارله شوه د همدغه کال د فبروري په ۲۲ نامتو شخصیت له دنیا څخه سترګې پټې کړې .

# دسقراط وصیتونه

سقراط د مرګ پر وخت خپلو شاګردانو ته داسې وصیت وکې : قناعت غوره کې ، هوا او هوس پرېږدئ د نعمت پر زیاتوالي دالله تعالی شکر پرځای کې په سختۍ کښې صبر کوئ په حوادثو کې زړونه قوي لرئ ، هر کار خوار او حقیر مه ګڼئ ، د دوستانو له تربیې څخه مه غافله کیږئ ، له دوستانو سره تل له محبت په پوه پلا مه ښکاره کوئ ، خپلو ژبې او خولې وساتئ خپل عیبونه د خلقو د مخه مه وایاست مرګ داسې دی لکه غشی چه د کمانې څخه ایله شو ژوند دومره قدر دی لکه غشي چه تر نښانه رسیږي څوک چه عفت ، پرهیز ګاري نلري که هر څو هوښیار او عاقل وي عقل و هوښیارۍ ئې تر کماله نه دی رسیدلی ، دخدای تعالی دوست هغه څوک دی چه فاسد خیالات ئې په زړه کې ور نه ګرزي او قبول ئې نه کې د هر چا چه ښه کار وربه زړه شي زر دي عملي کوي ښه د خوپو د حلال کسب څخه د مال حاصلول او له دغه څخه و خوارانو او مسکینانو ته نفقه ور کول دي د غضب د غلبې پر وخت دې ژبه د بد ویلو او لاس د ظلم او څخه وساتل شي او په پاچهۍ داده چه سړی پر شهواتو غالب سي ښه د عملو درې شیان دي اول دا چه دښمن دوست کړي دوهم چه بې عقل په تعلیم و تربیه پوه کړي دریم چه فاسقان وفاجران په نصیحت سره اصلاح او نیک عمله کړي ، دسقراط څخه چا پوښتنه وکړه چه کم شی د بر نژدې ی دی ور ته وویل اجل . بیائې ورته وویل چه کم شی د بر لیري دی ویل دغو ښتنې حصول پوښتنه وشوه چه له چا سره باید الفت وشي ویل د هو ښیار دوراندیش سره ، بیائې پوښتنه وکړه چه کم شی د بر تعجب وړ دی ؟ ده وویل چه هر ښیار چه د ناکامۍ څخه تاسف کوي .

د پیغلې عزیزې ارشاد ترجمه



# نتاشه

## هغه سرلوړې نجلۍ ده چه د خپل وطن د خپلواکۍ دپاره یې ځان فدا کړ

د جنګ وحشت ناکې چوپتیا د جبهې دلاسې بها نو او مرد کو د اوریدو زغ مات کړ د محاصرې د کلا بندۍ کړې خوراننګه شوې وه ، او د دښمن عسکر هم نږدې ترا ازدې شوي وه. نتاشه فقط د ګران وطن د دفاع په هیله جنګیدله او آخر یې مرمۍ چه پو اخې ددې د دفاع وسیله وه ، د دښمن د عسکر و خوا ته اور ویشتلی ، او په آخر کې ددې روح چه د عزیز وطن د خلاصیدو ، او د آزادۍ د ساتنې او ددې د آرزو ګانو و طرف ته د آسمان و خوا ته والوت .

نتالیه کوف شو واد ۱۹۲۰ کال د نومبر د میاشتې په شپږ ویشتمه نیټه په یوه ناداره کورنۍ کښې و دنیا ته راغلې وه ، ددې د کورنۍ ټول افراد انقلابي او کمونست وه ، نتالیه چه د نتاشې په نامه یادیدله ، پلار یې ددې په کوچنۍ والي کې له دنیا څخه سترګې پټې کړې وې د ده ورونه او یو مور یې هم د انقلاب ضد په جنګ کښې مړه شوي وه ، او یوه خاله یې هم د دښمن په لاس کې بندي وه په حقیقت کې نتاشه په یوه داسې کورنۍ کښې وه چه د دغې کورنۍ ټول افراد قهرمانان ؤ او تر کوچنۍ والي پورې ټوله د خپل وطن او خپلې خاورې د ساتنې په فکر کې وه .

نتاشه یوه آرامه نجلۍ وه چه دانا او د مور سره یې په یوه کوچنۍ کورنۍ کې ژوند کاوه ، مور به یې تل دغه ویل چه د وطن پرستانو لمړۍ وظیفه د مملکت او خاورې ساتنه ، او مبارزه ده د هغو دښمنانو سره چه د دوی پر خاوره تیری کوي ، او زموږ د هم وظیفه زموږ د اولادو صحیح روزنه او د دوی ته تعلیم ورکول دي چه د خپل وطن او مقدسې خاورې د آینده ژوند دپاره خاطر جمع او آرام او اوسو ، او دا به یې ویل چه موږ ټوله د دغه جهان څخه تلونکي یو ، باید د خپل مملکت دپاره امین او صادق خلک وروزل شي او فقط د دغه هیله او مرام چه زما دغه یوه لور د نتاشه و خپلې خاورې ته د یوه حقیقي وطن پرست په ډول د خلکو د سعادت او آزادۍ دپاره مبارزه وکړي .

زه دا نه غواړم چه زما لور نتاشه تجمل پرسته «د ښایست شوقي»، او د مستریح ژوند غوښتونکې وي، د نتاشي د مور دغو خبرو په نتاشي کښې هم تاثیر کاوه، او دغه د مور ویل ئې ددې د ژوندون د لمو لاره «خط سیر» وروښانه کړله.

نتاشي د کوچنیوالي څخه په خپل ځان کې د عسکریه ژوند سره تر اندازې ډیره علاقه او محبت په خپل ځان کې احساس کاوه او د عسکري مسلک ئې خورا زیات خوښ ؤ او د دغې میلې د سر ته رسېدو دپاره به ئې تل زیار کېښ او ځان به ئې ورته چمتو کاوه له دې سببه چه نجونې په عسکریت کښې شاملیدلای نه شوای داخبره زهیره وه لیکن په آخر کې دا اعلان وشو چه نجونې هم په عسکریه کښې شاملیدلای او منل کېږي.

دي هم د عمر پر ۱۴ او ۱۵ کال د نظامي تعلیماتو په زده کړه شروع وکړه او کال په کال ئې معلومات او لیاقت پراخېدې خپل دوستان په ئې تل د عسکریه ومقدس مسلك ته ښه قبول دادی وه عجیب قدرت او توان خاونده وه او په هغه مسئولیت کوچه نسبت وخپل وطن ته ئې دراود په نظامي مسلك کښې ئې ښکاره کړ.

مور ئې لیکلي دي: کوم وخت چه المانیان ددوی پر ګران او محبوب وطن تیری وکړ نتاشه د هوانوردۍ په پوهنځي کښې خپله وروستنۍ آزموینه تېروله او په نظامي کښې ئې درلوده چه پیلوټ انجینره شي مګر ددغې فاکولتې څخه د داوطلبۍ په ډول د «سنایپر» و نظامي ښوونځي ته ئې خپل ځان شامل کړ او د جنګ د جبهې وخوا ته ولاړه هلته تر لس میاشتې محاربې وروسته د ۱۹۴۲ کال داګست پر ۱۴ نېټه په یوه سخته محاربه کې چه المانیانو د نتاشي مربوطه قطعه محاصره «کلابند» کړې وه او جنګ د لاسي بمبانو په ذریعه ددوارو خواو په منځ کښې شروع وو نتاشي خپل د دوستانو د یو فرسره چه «ماشه پالو وانډوا» نومېده د مملکت د آزادۍ او د ملت د ممات او د خاورې د دفاع په مقابل کښې وژل شوه ددې زړه ورګ ورسته ددې په یاد او یادګار چه د وطن په لار کې ئې سرور کړی ؤ مجسمې ئې جوړې شوې او دغو دواړو نجونو د شوروي د ملت د قهرمانانو په عنوان د وطن د آزادۍ د جنګېدو پالار کې اومونه ځانته حاصل کړه.

آخیرنی خبرې چه نتاشي وخپلې مور ته لیکلې وې.

داوي: - ای آزادۍ! زه ستا زغ اورم پر ما ورحمېږه ځکه چه په دغه ګړی کې تر نورو د پرزه ستا پر موجودیت ایمان لرم او پر دغه عقیده جنګ کوم او پرېږدای به بم دښمن کولای نشي چه په دېسو زموږ د خاورې تصرف وکړي ولې چه هر سړی پوهېږي حق ای چه په خپل کور کې ژوندون وباید ورسوی او دا و قم وچاته ور نکړي چه د بل چا ګام ددوی په پاکه خاوره او ددوی په وطن کښې کښېښوول شي.

دگوډ تیمور دتاریخ څخه چه په نیویارك کی چاپ شویدی

د ښاغلی انوارالدین «انوار» ترجمه

# دګوډ تیمور انتقام اخیستل

دامیر تیمور داعادت ؤ چه دجګړی د ګرته ئي خپل حرم سرای هم ورسره نقلاوه ، ده بلوبل چه دجګړی د ګرته د ښځو بیول دتاریخ ښهٔ ؤ دزړه ور توب باعث ګرزی .

یوه ددغو مشهورو جګړو څخه چه امیر تیمور کړی یده د «انقري» جګړه ده ، کله چه تیمور ایران، عراق، ترکستان او افغانستان و نیول دیوه لوی خلافت جوړیدو په فکر کی شو او غوښتل ئی چه د ټولو اسلامی ممالکو ستروا کمن وبلل سی نو هغه څوك چه ددې کار مانع ګرزیدی هغه سلطان بایزید ایلدرم دعثمانیانو خلیفه ؤ .

سلطان بایزید په لږ وخت کی کوچنی اسیانیوالی او د بالکان دنیولو په قصد رهی او د بالکان لوی هیوادونه ئي هم تصرف کړه ، د شرقی روم دامپراطور څخه چه په قسطنطنیه کی ئي حکومت کاوه باج او خراج واخیست او پدی ترخ کی ئي دا هم پر کښېښوول چه مسلمانانو ته په قسطنطنیه کی مسجدجوړ کړی او سلطان بایزید ته به دروم د امپراطور له خوا هغه تاکلی کالنی وجه نا دیهٔ کیږی .

سلطان بایزید یو مفصل حرام سرای درلود چه د هر ملت او هر نژاد څخه ئي ښځی ورته راوستلی وي. که به چاغوښتهٔ چه دده په ورانډی او دده په دربار کی مقرب و ګرزی نو بهٔ ئي د ښکلی ښځلی په ور کړه یادیوي ښایستی تجلی په اطلاع ور کولو سره چه په بلای ځای کی ده دامقام ورته پلاس ورتی ، ددې جملې څخه د بالکان والی «سنان» یولیك وساطن ته واستاوه او ویل هغه کی ئي لیکلی وه چه د بلغار پاچا یوه ښایسته خورلری چه (دسپوتینا) نومیږی او د بالکان په ټولو ملکو کی ساری نلري.

سلطان بایزید ددې ایلك تر وصول وروسته سمدستی لښکر سره تول او د بلغارستان پرخوائي حرکت وکړ ، د بلغار پاچا ته ئي ولیکل چه : که دی خور په ښه پرده کی را کړه ښه کنه د بلغارستان خاوری به په توبرو کی وچلوم، نو د بلغار پاچا په سلهٔ دبری مشوري او مصلحت ورته ولیکل چه زما خور بدې شرط ستاسی وخدمت ته تیارهٔ ده چه د اسلام ددین له قبولولو څخه ئي معافه کی سلطان د بلغار دپاچا داخبره

ورسره ومنل شو نو ئي وخپل حرمسرای ته راوسته او یو خصوصي کشیش ئي ورته مقرر کی داوخت سلطان بایزید د غرور اوبېري په میو مست او پرهیڅ چاتي تن نه ایښوده دا حالونه امیر تیمور ته هم رسیدل نو د پښتنو زړو سپړو لښکرو سره د سمرقند څخه مخ پر (انقره) رارهی شو، بدې سفر کی دده هغه گرانه میرمن چه د ایلخانی مغول اور او چنگیز خان د لمسیانو څخه وه هم ورسره وه دا ښځه پر تیمور دو نه گرانه وه چه دا به هرچیری نله بنځه زره ښځی بدئي همرکابه وی او دا به په تخت روان کی سپره وه، دا ښځه میرمن سارای نومیده او د تیمور بدې سفر کی په ډېر جلالت او عظمت سره تر (حلب) پوری رارسیدل.

تیمور د(حلب) څخه یو ایلک د سلطان بایزید په نامه ولیکی او په هغه کی ئي ځنی غوښتنی وکړه که ته زما نوم په خطبه کی یاد کی او خپل ځان زما تحت الحمایه وبولی نو زه به له دې چه کم ضرر درورسوم بالعکس در څخه واخلم پر هغه خوا چه راغلي یم بېرته به ځم

بوه هفته وروسته بدا سی حال کی چه تیمور د خپلو سردارانو سره خپل لښکریان معاینه کول قاصد دده د لیک جواب راوړ (شرف الدین) د تیموري دربار یو پوه سړی ؤ په فارسی، ترکی او عربی ژبو ښه پوهیدی. دغه لیک ئي دپاچا په وړاندی وایه او تیمور هم ښه غوږ ورته نیولی ؤ کله چه د لیک وېل یو ځای ته ورسیدی تیمور نا ببره پر حمله کړه او د شرف الدین څخه ئي لیک واخیست تو کړتو کړ ئي کی او د سلطان بایزید قاصد ئي هم چه دا لیک سره راغلی ؤ بوه سخته چاپېره وراهه، تو اسه حاضرین ددې پېښی څخه متاثر سوه او پوه سول چه سلطان بایزید وامیر تیمور ته څه لیکلی دی؟ پدغه شپه چه امیر تیمور خپل ځای ته راغی که گوری چه د میرمن سارای دده گرانی ښځی نور کالی اغوستی دی او ډېره غمجنه ښکاریږی کیده تیمور ددی کار علت ځنی وپوښتی میرمن سارای ورته و ویل چه بایزید ماته دخپلی مینځی خطاب کړیدی او غواړی چه ما مینځه کړی نو تر څو چه ته ددې خبری انتقام وانه خلی یا پدغه کالو کی سلطان بایزید ته د مینځی په تو که ورنه سم اراده نه لرم چه دا کالی الیش کړم.

امیر تیمور پدغه شپه دودی وانه خوړه او امر ئي وکی چه لوبه نقاره یعنی د جگړې نقاره دی وو هل سی، لښکریان چمتو سول او دا قری پر خوانی پرغل و کړ دا جگړه چه په تاریخ کی د ترکی ډېره غټه جگړه یادیږی د گوډ تیمور په گټه او د سلطان بایزید یلدرم په ماتی پښپړه سوه، سلطان بایزید، دده زامن او حرامسرای ئي دامیر تیمور د لښکریانو په لاس کی بندی سول په حرامسرای کی (دسپو نیفا) د بایزید ښکلی محبوبه هم د تیمور په لاس کښیوته.

په دابله شپه تیمور امر وکی چه په سو ؤ مشعلان او څراغان دی ولګول شي سازندګان دی راټول او ښکلی ساقیان دی دامیر په جشن کی برخه واخلی داهغه شپه ده چه امیر تیمور د سلطان بایزید پر طلائي تخت کښېنوست په زرو سردارانو او غټانو بدي جشن کی حضور درلود امیر تیمور امر وکړی ؤ چه پدی شپه باید رسمي مراسم یارسمي قیودنه وی او هرڅوک دی ازادانه برخه وکی او ځان دی خوشاله کی کله چه د تیمور دامحفل خورانود ؤ نو وروسته مخصوص سړي ته ئي امروکی چه د بایزید ښځه څنځیران ایسته کی او په پوره تعظیم ئي دلته راولیء نو کله چه بایزید مجلس ته را وستل سو امیر تیمور په احترام ورته ولاړ سو او پر خپل اړخ ئي کښېناوه او په خبرو ور سره بوخت شو پدي وخت کی سلطان بایزید د وزیرانو په ذریعة دامیر حضور ته د معافی درخواست وړاندی کی دامیر د خوا څخه هم ومنل شو .

په عین حال کی تیمور وخپل یوه حاضرباش ته په غوږ کی پټ هدایت ور کی او هغه د مجلس څخه ووت ، لږ کړی وروسته نا څاپه د مجلس رنګ بدل شو او په حاضرینو کی یو جلا شور ماشور پیدا شو او هرچا غوښته چه د تیمور و تخت ته نژدې ځای و نیسی ځکه چه (دسپوتینا) د سلطان بایزید ښکلی محبوبه بې حجابه د تیمور وتخت ته ولاړه وه او په داسی حال کی چه پخپله بایزید هم ناست ؤ دامنظره خلګو و لیدل .

پسله لږ آنه تیمور وسلطان بایزید ته په لوړ آواز وویل چه هغه ته وي چه زما میرمن دی دمینځي په حیث غوښتل اوس د هغه په انتقام کی دادی ستا محبوبه بیله حجابه زما او زما د سردارانو په حضور کی ولاړه ده .

سلطان بایزید ددی خبری تراوریدو او ددې منظری تر لیدو وروسته لرز واخیست او بې هوښه پرېووت څه کړی وروسته ئي د دیر غم او خراشینی په اثر ددنیا څخه سترګی پټی کړی .

تیمور دا ښځه وبوه لشکر دارانو ته و بخښل او دا حال ئي وخېلی « مسټر من سارای » ته ووایه هغې کالی الیش کړه او په دی انتقام ئي زړه ښه سو .



تاریخي :

دښاغلی عبدالباری «آشناء» راليږنه

# لښکرگاه

لښکرگاه چه د بست په بغل کې واقع ده د (۳۹۴ — ۳۹۰) هجری قمری کال په حدودو کې-اومړی ځلا دسلطان محمود غزنوی په امر او اراده سره آباده سوه چه وروسته ئې زوی (مسعود) دلښکر گاه ابادی ډیری کړی او بیا ددوی اولادې دلښکر گاه دښو ماڼیو او مجللو ابادیو څخه کار واخیست .

لښکر گاه دغزنی ترخرابی وروسته دغوری علاوالدین دقهراو غضب په اور وسوه نو ځکه بیا ترمیم سوه ، بیاو سوځله سوه بیاو نیوله سوه تر څو چه چنګیزی مغولانو دمځکې سره یو شی کړه ، او ګوډ تیمور داتم هجری قرن په اواخرو کې دلښکر گاه دواو او بندو په ویجاړه ولو سره نه یوازی د بست او لښکر گاه ژوندته خاتمه ورکړه بلکه په هغه سیمه کې ئې دعمومی ژوند کمبله ټوله کړه خو نن ورځ بیا هلته ددې ملك دآبادۍ په غټو نخښو لاس پوری سوی دی او ورځ په ورځ برمخ ځی .

دلښکر گاه لنډه تاریخچه :- هغه وخت چه امیر سبکتګین دسلطان محمود غزنوی پلار په سنه ۳٦٦ هجری قمری کې په غزنی کې پر تخت کښېنوست نو ئې وغوښتل چه دخپل حکومت دائره ارته کې لومړی ئې دافغانستان شمالي ، ولایت خراسان او زمینداور په خپل تصرف کې راوستل ، په دغه وخت کې بست او د هلمند منځنی سیمه ددو محلی حاکمانو په لاس کې وه او هر یوه غوښتل چه ددغې سیمې امارت دهغه بل څخه لاس ته کې ، د بست دښار حاکم (طغان) نومیدی او ددهٔ دمخالف نوم (بای توز) ؤ بای توز غوښتل چه د طغان څخه ددغې ذکر سوی سیمې حکومت ونیسی نو ور نه پورته سو ، طغان دخپل حریف تاب نه درلودی نو ځکه مخ پر غزنی رهی سو او د سبکتګین څخه ئې کومك وغوښتی ، سبکتګین په څو شرطو سره د طغان پر خوا او مخ پر بست راهی شو او بای توز ته ئې ماته ورکړه او طغان ئې بیا د بست امیر مقرر کې ځکه چه وروسته طغان دخپلی وعدی څخه مخالفت وکی نو خبره وجنګ ته ورسیدله چه په نتیجه کی طغان او بای توز دواړه د سبکتګین دلاسه و کرمان ته فراره سول او له دغه وخته څخه دهلمند منځنی سیمه او دبست ښار چه آباد

او مشهوره ښار ؤ د سبکتګین د حکومت تابع شوه یدی وخت کی د کښته هلمند سیمی چه سیستان یا سجستان بلل کېدی او مرکز ئې زرنج ؤ د محلی امیرانو له خوا اداره کېدی دا امیران د صفاریانو د بقایا ؤ شخه وه او د سامانیانو د نفوذ په وخت کی د هغوی تابع وه مګر کوم وخت چه غزنوی د دولت قوت پیدا کی او سامانیان ضعیف سوه نو د غو امیرانو د خپل استقلال دعوه و کړه او هغه وخت چه سبکتګین په غزنی کی د غزنوی کورنی اساس کښېښودی او تر ماوراء آمو او هلمند پوری ئې د خپل نفوذ دائره ارته کړه نو په دغه وخت کی د صفاریانو د یا تـه امیرانو شخه ابواحمد خلف ابن احمد په سیستان کی حکومت درلودی کم وخت چه سبکتګین د بست تر نیولو وروسته د هند په فتوحاتو مشغول ؤ نو خلف نامی له موقع شخه استفاده و کړه او پر بست ئې حمله و کړه مګر په سلسله هغه چه سبکتګین له هنده

راو ګرزېدی نه یوازی ئې د بست ښار ځنی و نیوی بلکه مالیات ئې هم ځنی واخیستل او وروسته ئې خلف و باخښه د سبکتګین د مرینی په وخت کی (خلف) بیا د سر کښی خیال پیدا کی د ځینی ځایو لکه پوشنج او قهستان په نیولو پسی سو یدی وخت کی سبکتګین مړ سو او زوی ئې سلطان محمود پر تخت کښېنوست.

سلطان محمود د په ۳۹۰ هجری کال کی د یوه اوی لښکره سره بست ته راغی او پر سیستان ئې حمله و کړه او خلف ئې کلابند کی خو بیائې و بخښی په دغه دول څو واره نور هم خلف سر کښی و کړه او سلطان محمود به بیا و بخښی څو آخر ئې ګردیز ته واستوی او هلته مړ سو، کښته هلمند یا سیستان چه هم د سلطان محمود په وخت کی د غزنوی دربار تابع شو نو ددې د پاره چه سیستان وساتل شی سلطان محمود د یوی لښکری چوڼی د آبادولو په فکر کی سو هغه چه د سیستان په مخ کی ئې د بست شخه یو فرسخ

لیری د هلمند پر غاړه د لښکرګاه آباده کړه.

د سلطان محمود تر مرګه وروسته بیا سلطان مسعود په لښکرګاه کې ډېری آبادی و کړی او ښه ئې ارته کړه بلکه د غزنویانو په ټوله دوره کی لښکرګاه آباده وه خو هغه وخت چه غوری کورنی عروج و کی او غزنویانو ته ئې ماته ور کړه نو علاوالدین جهان سوز غزنی و نیوی او ورې سوځی بیائې د بست و خوانه مخ کی او هغه ابادی چه غزنوی پاچهانو په دغه سیمه کی کړی وې ټوله ئې خرابی کړی چه په دغه خرابیو کی لښکرګاه هم ورانه سوه خو بیا هم تر اس پنځلس کاله خرابی وروسته د غوریانو د دوره دیا چهانو له خوا تر میم او ودانۍ لاندې ورګرزیده.

د لښکرګاه دوهمه خرابی د مغلو په وخت کی پېښه شوه چه یوه پلا چنګېزی لښکرو پایماله کړه او بله پلا ګوډ تیمور په ۴۹۷ هـ کال د هلمند ټوله سیمه تر سیستان پوری دا سی

« نور په ۲۷ مخ کښی »

بشاغلي مولانا محمد شریف «حبیبي»

# د لیکنې قانون

نو له لیکنې خپل موضوعي قانون لري او هره انشاء یې بل عبارت البته په اختراع او ایجاد باید وبلل شي .

لیکن ډېر د تأسف ځای دی چه ځینې اشخاص چه دوی کلونه کلونه په عالم کې د لیکنې تېر کړي ، او ډول ډول مضامین ئې انشاء کړي ، او هر څو نه چه څوک ورته ملتفت شي نه د لیکنې خوند اري او نه انشاء ورته ویل کیږي داولې ؟ ځکه چه دوی په خپلو لیکونو کې لحاظ د دې قانون نوی کړي چه لیکنه خو د انسان د فطرت مظهر او د انسان خپله شخصي قریحه او دده ذاتي طبع ده چه فقط دده او دده د ذوق او استعداد نمایندګي کوي .

او که له موږ څخه په وخت کې د لیکنې دا باریکي تل هېره وي او موږ لیکوال اغلب په تقلید د بل او په اقتفا د نورو ، او د دې او د هغه په ترکیب د خپلې لیکنې پیرایه او تکمیل کوي او یا پر دې افکار او احساسات سره ټولوي ، او یو څه مکرر الفاظ او لغات هلته بیځایه سره کوتره وي . خیال کوم داسې لیکوال د خپلې لیکنې امتیاز کله پیدا وي او کله باید د یوه تکړه او مقتدر لیکوونکي په سترګه سړی ورته وګوري . او ډېر آله د تمسخر ، او خورا ډېرو کې سړی او ډېر بې اهمیته او ابتدائي هم ورته ویل کیږي ، دا ځکه چه دی د تقلید او اختراع یا ایجاد فرق نشي کولای . هلته چه دی باید فقط خپل فطرت او خپله عاقله او علمیت او رسائي یا قریحه په کار کې واچوي چه سړی دی هم وپیژني او دده مقدار د علمیت او معلوماتو معلوم کي . هلته و سړي ته دده تقلید ، دده پارچه نانی اند وخته ورقه برقعه د وخته . او یا معلومداره سرقت ادبي یا غیر ضروري اقتفا د دغو سړي ته معلومه شي په دغه وخت کې روح د قدردانۍ او دده امتیاز ورک شي . یوازې سړي ادیبان چه د داسې لیکوال نه نشي د بسیط او ډېر نابلد په سترګه وګوري او په تېره د الاهم چه څوک نه شي پر مله کولای چه لري دي او دده علمي استعداد او لیاقت وپیژني او بیا نو دده انشاء او اختراع یا ایجاد ته نسبت وکي چه دا دده تراوش او روښنائي د ذهن ده ماحول ئې ښوولی دی ؟

چیری علی الاکثر که اوری لیکوال که کوچنی دی دلته دغه فطرت ئی خوښ کړی او ودی ته ئی فکر نشته چه اوی باید خپله اوښی ویا لی. او کوچنیواله بریږدی چه په کوچنیانو کی پخه شی یعنی تقلید چه د کوچنیانو یو غیر اختیاری او مجبوری عادت دی او ددې اقتدار نلری چه دخپل ځان کمه خیر ته کم تحقیق وکړای شی. نو دغه باعث دی چه د تقلید ځخه ئی مستغنی کیدلای او څخپول چه دوی خپل انشائی او اختراعی امتیاز او لیاقت باید څرګند کی چه منحصر دده په ذوق او طبیعت او دده د قلم مولود وبلل شی. په داسی تقلیدی لیکونو کی انشاء او اختراع یا ایجاد یا بل شخصی اوذاتی قریحه او طبع څرګنده باید ومومی؟

نو دغه سبب دی چه اوری لیکوال که په داسی تقلید لاځمه وی داسی لیکوال په لوی لیکوال خیال کوم لا نه بلل کیږی او درجه ئی د یو مابتدائی هلک د مکتب چه دا او هغه سره راتولوي او خپله مدعا په پوره کوی او خپل نوبت په نیروی چه ګوندی په پوقطار کی د لیکنی محسوب او داخل شی د پیرو سترو لیکوالو خپل علمی مقام او امتیاز په دغه نقص او په دغه علت بایللی دی. او خبر نه یم چه نوم د اختراع او ایجاد ئی ته دی اوربدلی او که ئی بلکل فکر وخپلی غلطی ته نشته په دوارو صورتو کی مسئول او ور د معترض بلل کیږی چه خپل لوی واله ئی په کوچنیواله بدله کړه او داسی په نه کیږی دهره لویه ځخه په دنیا کی داوئی مظاهر غوښته کیږی او دهره کوچنی ځخه د کوچنیانو اثرات او علایم.

نه یم خبر چه زما په مطلب به هر لیکوال باهر لوستونکی پوه شوی وی؟

که چیری مطلب زما لیکونکی وچا ته نه شی معلوم څو نه بلی ناسف؟ ..

البته بیرته باید ارجاع وکم ځکه چه د پر امیدشته ولی چه مقلدین په نام لیکنه پسی ګرزی بیا هم ګوندی د یوچا ځخه یو څو کرښی یا یو څه احساسات او عواطف زده کی.

نو په دغه تقریب غالبه دا ده چه دا موضوع د نورو ځخه په نشی پاته. لیکن که بیا وروسته له دی استعلام ځخه یوازی یو څو کرښی او یو څو عواطف زر ژر دیاره د کمی مقالی د مقلدینو او الفاظو دخوا ځخه لکه په نورو وختو کی تاکل شوي او د موضوع په روح ئی ځان نکی خبر باید چه سری بل تأسف وکی او ډیر مأیوس شی او داوروانی د ځانه سره چه په نو که د غوږو ځخه کار نشوای اخستلای آخر دعینکو ځخه ئی څر باید وا خلی.

په یوه مجله کی می یوه مقاله وکتله موضوع ئی اصلاً خوږ الوده. او قلم طلبه او لکه په خپله موضوع د غسی قلمغر سانی ئی هم غوښته لیکن د یوه استاد او لوی لیکوونکی له خوا ځخه بدی سجع اوذی انسجام اودی وضع او ترکیب سره تبصره او شرح لکه چه لهجه دلیکوال او پخوانی لیکوال نه بلل کیږی بیا بیرته فکر وکم

چه په داسې لیکونکی فقط
عادي خلاصوی او خپل زاري
تېروي پـا حو صله نه شوي
نورنو په نور تناسب پسې نه
گرزي ولې پدې چه هغه مطالب
چه اعتقاد پسې زاړه شوي او
موږ ئې ځنې خبر وو، هغه خو
داسې یو مطالب ؤ چه موږ د
بېدل او مولانا او نورو د بیتو څخه
په دفعاتو کتلي او ویلي دي
او که څېرې ئې بیا د هغو
احساساتو او عواطفو چه په حق
کي د هغو ایجاد او ابتکار
بلل کېږي موږ ته بیا په تکرار
سره لاس ته راشي. ومنئ چه
یو وار تحصیل د حاصل، او
بیا تکرار شنیع، او بل بې مزه
او بل دو نه مزیت او خوندور
هم نه بایدو بلل شي. چه هر
لوستونکی به ځير ځير ورته
وگوري او یائي بیله پوهېدو
گرځو ترپایه ولولي. داځکه
چه ذوق گرځي داسي مکرر
لیك چه د هغه سیمیلو نه د هرچا
ترنظر تېر شوي وي او داسي
تحقیقات چه ثقافت او هنر، په
تېره فلسفه، علم، فن او نور
پخوا او اوس او مبادي او اخر

او عقاید د نورو کلو او داوس
په زیانه روښنائي د مبداء او
او منتهی روښنائي او له دې څخه
معلومات چه عنایت ربي د چا
سره شوی او د چا سره نه دی شوی
دا تول پدې اوس عصر کي سړی
خیال کوي چه داسي معلومات
به آیا وهر چا ته نسه وي
معلوم؟ لیکن که وخت او
زمان بر ته شي. ممکن داسي
معلومات په هر نه مخیله او حافظه
کي وجود ولري. او یو نوی
کار نه بلل شي، په تیره ایجاد
او اختراع یا ابتکار ورته نه
ویل شي.

زموږ غرض خو دادی چه
په دی اوس عصر کي باید سړی
خپل علم او خپل فکر، او خپل
ذوق او خپل کشف او تحقیق
ښکاره کي لکه د نوري نړۍ
موجدین او مخترعین چه په هره
شعبه کي د ژوندون کښي، او
خپل مستقل او منحصر عقلونه
او ذهنونه په محصولاتو کي په
تول عالم منلي. لکه چه په
هر چا ئې خپل هم ومنله او القاب
د مخترعینو او موجدینو ئې هم
حاصل کړه او څو نه به ښه وای

چه په موږ کي یو سړی هم داسي
وای او داسي مقام ئې در لود ای
په موږ کي خو له داسي سړو
څخه یو لانه شو پیدا چه یو حقیقت
دی بیله د مقیاری څخه د بل
چا یوازي په خپل فکر وڅیړي
داځکه چه دا فکر چا نه دی
کړی چه هر لیکونکی او هره
لیکنه په برابري کي د سن
او سال دیر تحول پیدا کړي
په تیره یو وخت داسي بایدراشي
چه زموږ په دنیا کي په چلاو
غاړه نه باسو په هوا کي به د
ځان دپاره ژوند نه کو. او
یا به د غه عادي غذا چه اوس کار
ځني اخلو، به یو بل شی به
ئې بدلو داولي؟ سبب دادی
چه د هغه ژوند زوړ و بلل شو.
نو قانون د تجدد هم دغسي قائل
دی چه باید په تولو شیانو کي
باید تحول پیښ شي. چه هم
تجدد اجرا شي. او هم عصري
ایجاب منل شي.

هر څو نه چه مي کتلي او
گرزېدلي یم داسي یو مضمون
چه هغه زه مستقل فکر د یو
سړي و بـو لم او دي او د ده
استعداد او لیاقت په وېېږ لم

تر اوسه خولاس نه لا یا دی راغلی آینده هم هیڅ اطمینان نلرم چه بدې خبره به زموږ خلګ پوه شي او که به ؟

دا ضرورت زموږ عصري ضرورت ، او زندی مسئولیت لاندی یو . او یوازی زړی خبری اوزاړه بیانونه څیرل او منځ ته راا چول نو کله موږ به مرور کی د نوله عمر ادا نه کړه او بیله دغی روبي او دغه ملکه یو بل تحول پاهره خوا کی چه دی زموږ دماغو ته ولی نـه معلومیږی چه نړۍ څه کوی او کم رجال ئې وروزل او موږ څنګه خانونه وروزل چه یو څو ورقی دی مخ او استر کو او کال په کال نوی مخ پـه اغوندو . او په منځ کی ئې زړه ګډله . او دوخانه یو ربا واز یو ن جامه ریـا دار یم ، دا په تر کمه ادامه ورای داډول خلګ او داډول زاړه دماغ زه چه یوازی په تحصیل د حاصل ، او یوازی په مکرراتو امو خته شو یدی او نوری مطلو به پردی نه وینی ؟

دا هم یاره غټه قیصه ده ، او قابل د تردید او قضائی ده چه څو عصره وروسته باید موږ د هر ډول عقلي او فکري محصولاتو څخه یوازی په نام د مقلد ، ارزښت نور ثابت شو . او لاسونه موږ د هر ډول هنر او ثقافت څخه خالي پاته و بلل شی .

که دغه روبه وموږ نه باقی پاته شي . قوی احتمال شته چه یووخت به موږ وینو چه موږ یو کار هم نه دی کړی او هیڅ تحصیل دا څنګه چه په چم ئې نه ؤ بوه هغه وخت نو بیا علاج ډیر ګران او متعسر بلل کیږی

او که موږ هم دعـوه د داختراع او مرجد یا مبتکر په خیال کی وارو ، دادعوه و خیال است و محال است او جنون بنائی و بلل شی . څنګه څه رنګه چه موږ تر اوسه لا یدې نه یو یو هیدلی چه دا انسان خپل ذاتی جوهر څه دی او څنګه بکار واچول شی ګیله باید څوك و نـکی که تر ابده زموږ لیکنی مطلق تقلید ، او مکررات و بلل شی و دی بلل شی . متحسس خوشکر موږ نه یو چه دا عیب دلیکنی خپل څخه یو رته کو او لاسونه او عقلونه یو څه از زده او پراخ کو ، او نوری بردی چه دانسانانو شخصی او ذاتی اقتدار او جوهر یـا انرژی کولای شی چه هلته مستقلاً سیر وکی او د خپل فکره څخه داسی کار وا خلی ، چه نور انسانان په ډیر تعجب رادعوت کی چه دوی داسی فکری اختراع او عقلی ایجاد هیڅ نه لیدلی وی او نی کتلی .

او که څوك یوازی زوړ نوېس ، زوړ مغز او غیر متحسس او د عصر دود نه وی ورته معلوم . آیا زیار او داډول بیغیانده او حاصله تتبع او مشهود کرده یو بار د مغز و دهر چا نه بلل کیږی ؟ او که دغه دیل سری هم وا و سیږی آیا موږ به هم په یو قطار کی محسوب شو ؟

هره لیکنه او هره تبصره او هر مضمون که علمی او غیر علمی که دعالم یا غیر عالم د خوا څخه دی ، خالی دا مستقلاله او نه کر څخه ، او ژر وسری تـه معلومیږی چه دا خو یوازی د ده مطالعات دی او دغه مطالعات د ده اجراو بلای شي . ذی پخپله

یو موجد فکر او مخترع تخیل لري، چه ورلاندي د فلسفي د لارې څخه په موضوعاتو کي کام کښیږي بیا دي د علم په قانون بو څه د خپله ذاتي جوهره څخه راوباسي، او بیا دي و دانسي حدته د انتاج ورسیږي چه فن ئې معلوم شي.

او څه دول چه زموږ په تېرو خواوو کي دڅو ندیوازی تقلید او زاړه افکار او بیهوده، فضول بالایعني او خارج له ضرورته مضامین والیدل شي. ځوانه سري اد یږي چه وواني. موږ نو لکه چه یو کام لا هم پسه وراندي نه دی اخستی او ځونه کښېنته یا نه یو.

اکثر وخت انتظار کوم چه ممکن داسي لیکنه او داسي عقول او عواطف استقبال کم چه د پرتوي، او چاتوي او روبدلي او څه دول چه .... لا تر اوسه په دا دول عقل او داسي لیکونو اخته دي خیال کوم چه د چارسو عریضه تر پس خوار به څه لیکي دا چه د اور ذا حال شي نو څور خو څور دي او کیله هم نه څیني کیږي.

ارمان چه زه له . بالمشافهه وای نو به د پر ځه وای نو به مي ارمان په زړه کي نوای پاته چه پادي ماقونع کړ بوای یاد ه زه یوه کړ بوای . چه ورو سته مود وو یوه کړ بوای: چه یا مرا باخود بېغر یا نو هم باما بیا! .....

زما په عقیده، سید جمال الدین یداسي بارو کي خپل وجداني غاري خلاصي کړي، او چغاري ئې وهلي دي . او تر اوله ابغه او ستر و حکماو دا دول پردی د جهل او خرافت د مخه څخه پورته کړي دي حتی مبتکر و شعراو ئل په یو د ۆ مصر عو کي دغه مضمون نو له ځای کړیدی

نو که نور لا هم دغه زړه شرح کشافه لا بسي او زده شي ځونه وخت ضایع کوي او خو نه سري باید تر شا ثابت سي داعصر د داسي لیکو نو نه دی داعصر د موجدینو او مخترعینو او د منحصر په فرد مولفینو او مصنفینو دي سړی باید زدي وهي داسي رابورته نکي چه څوك حیران شي چه کم عصر یادوي او بیانبه دي بیان دي شي لیکن

چه داوس دپاره وسیله د نجات و بلله شي، یا داوس د پاره توسعه د معلوماتو په وشي یا داوس دپاره ذریعه د دي عصر دا پجاباتو و شمیرل شي . یا بوه اختراع او ایجاد پوري اړه او تماس واري، یا داوسني عصر مشکلات په حل شي، یا د پردو داقناع دپاره کافي دلائل که عقلي که نقلي وي وبلل شي، او که نه دا او نه هغه پر موقوف وي نو داسي لیکــني خو یوازي واري نیرول او یوازي تقریر، او زړه تشاول دي .

لکه دا چه یو غرار ه وي چه هر دول نشه شوه پروا نشته نشه دي سي .

دا به لیز او ډېرو لیکوالو نه جونه شوبوی چه سري قلم را واخلی او وغواړي چه یو مبسوط لیك وکي، ځو نه زور غواړي او کم وسایل پکار یږي چه دده مدعا ئبه ادا کی او ځونه اوږه علمي سرمایه غواړي چه معقولیت خپل د لیکني ښه څر کند کړای شي او که نه داوي نه هغه نو داسي لیکني خو تر موږ د مخه هغه سید په

ستړی شوی بیدل پکښې وبلی شوی حافظ پکښې سوی، مولانا پکښې څیښیانی شوی او نور حکما او ادبا پکښې زغیدلی ئو که نور لا هم دغهٔ شرحهٔ پسی شرحه‌شی معلومه ده‌چه خدای خبر څاشی ځنې جوړ شی ، نهٔ به‌مود‌مړووی نه‌دژوندو زموږ لیکوالو او ادباو ته صرف بوه یادونه کوم چه آینده خپل نظریات اوعواطف ددې عصر وایجاباتو ته ملتفت کی او نه وغواړی چه نړی بوځه کوی اوموږ هم هغه انسانان یو لیکن نه خپله لاربیژنو او نه‌دبل کشکی زموږ اوقات دا ډول تیرشی‌چه موږهم دیوه هنر او ثقافت پسه روی خیرالامم وبلل شو ، اوخیر کثیرموو چانه ورسیږی او لکه باقیات الصالحات‌غوندی پاته شی ، چه نور عصرو نه لانحسین او تقدیر د هغو وکی .

او که زموږ هره کړنهٔ اوهره لیکنه دونه قیمت واری چه‌موږ دژوند سره وداع وکو او نور زموږ د تحقیقاتو او لیکو نوڅخه انصراف قبول کی . آیا دغسې نه‌ده ؟

دی‌عصرنهٔ بیدل‌اومولانا اوسعدی اونور لا یو ډول زاړه بلل کیږی نو زموږ لیکنهٔ به کمه خونهٔ روښانه کی او کم کمراه ته‌بهٔ هدایت ورکی ،

داځکه چه داعصر فقط دایجاد او اختراع عصر دی چلسری د ستی ځنی مستفید او متمتع شی او ځنې وخوری اوځنې واغوندی او په توسط ئې برلاری رهی شی .

اوس داسی لیکنی اوداډول واهیات او داسی زاړه بابونهٔ نه‌دی باب‌ماغزه‌یعنی عمومی‌ماغزه زموږ دوګړو پیدا سی مشکل ترا شیو نه شی مشغو لیدلای .

اوس هرشی بالفعل او نقد ، بسایدوی چه علی‌الحسابهٔ دشپی اوورځی چلاو دپاره کفایت واری‌او که‌پیداسی افکار وڅوك بخت شی ممکن ایجاد اواختراع هیڅ ور به یاد نه شی چه څه نه‌ځنې حاصلیږی .

لیکن که‌بیرته‌انصراف وشی‌اوخپلی‌لیکنی بل‌ډول واړول شی : چه‌دعصر سمون پیوشی او لازمی احتیاجات پورفع‌شی‌او پریشانی‌او اضطراب ته خاتمه‌ورکړ شونه به‌ددې وخت‌دمقتضیاتو سره سم‌یو کار ثابت شی . ځکه‌چه که‌بصیرت‌چانه‌وی ودې ګوری چه‌موږ نه د ژوندپه ټولو شعبو کی بدې اوسنی‌وخت کی کم کم شیان‌لازم دی او که پاهغو پسی نه‌وګرزو ، او ګامونه پسی وانخلو ، آیا داوس‌عصر نسا که مه او پاته به ونه بلل شو .

که څهٔ هم موږ اوس دونه‌پاته‌یوو ، چه خپل قهقرائي حال‌ته و ګورو بایدلاس واخلو اوهغه ته متوجهٔ شو چه‌زموږ فرض منصبی بلل کیږی . په‌موږ کی اوس‌هرڅوك چه دپری پیسی اری

هغه ته تر لا مراجعه کړی دا لکه تر له سعادت او بری چه ملته سره غوندي شوي وي . کشه هم موږ وو ېنو چه هغه د مو هرم سعادت څښتن ازوخت بعد یا فشاري خورن شي . یاله د نیا څخه ديږ نا کامه او بې نام او نښانه ولاړ شي . او اوقلاً د ډېر سر مستۍ د کبله دوئ سرشته په ژوند کې توی برابره کړي چه اعقاب د دوی له ده څخه ور وسته هغه د ځان سرمشق و بولي او ژوند له سر گردانیو څخه په وسائلو ژوند او د انسان ژوند په تیره دیو داسې عصر ا کې دا اوس کله دا د ول ایجابات دي چه یوازي د ترقۍ لار تړي او بدبختۍ ېېرنه ژوندي کوي . ومنې چه ډېر خلاف عصري کارونه په موږ کې باب دي چه زموږ احساسانو د هغو احساس لا نه دی کړی او نې حل کولای شي . دا ځکه چه زاړه رهی یو دا ځکه چه مکرر یو ، دا ځکه چه دهره ملحوظ څخه تش یو ، دا ځکه چه (میش به پای خود او بز به پای خود) ، او دغه حیوانی قانون زموږ دانسانیت

دپاره استاد او رهبر وبلل شو اصلاً که څرک و پوښتي چه مبنا دلیکني پر څه ده باید وویل شي چه هره لیکنه د دوو حالتو څخه خالي نه ده یاد مطالعاتو د مدرکه څخه . او یا داسې چه پر مخ مستقله او اختراعي او ایجادي وي او هر منشي او لیکوال هم دغه دوه

حالته لري. که لیکوال مقتدر نوی یعنې خپله ملکه او خپل فکر نه ولري نو خپله لیکنه د نورو دافکارو د مطالعاتو په سبب پوره کوي . چه دا صورت د هر لیکوال ابتدائي او بسیط حالت ښکاره کوي . او دا حالت هم تر یو وخته د هر لیکوال سره بیا بد وی یعنې همیشه

(د ۲۰ مخ پاته)

## لښکر ګاه

خرابه کړه چه بیا چا ژوند پکښې ونه کی او له هغه وخته تراوسه خرابه وه؛ ځکه تیمور د بست او زرنج تر لاه ولي او بندونه خراب کړه او د هلمند اوبه ئي له دغو آبادو ښارو څخه قطع کړي په دغه سبب د انسان او نبات د ګذارې امکان ورك شو، شنه باغونه او زر غونې مځکې وچ دښت و ګرزېدې دوچوړې له جهته د خلګو ژوند سخت شو زرنج ، بست لښکر ګاه متروك شوه او خلګو کوچ وکی ، لندی دا چه دافغانستان معمور او هغه د خلګو د کې بر خې

او ښارونه چه د هلمند پر غاړه واقع وه د چنګیز او تیمور د تر خرابیو وروسته دا بو د نه تر سیدلو په سبب ویران پاته شول څو چه اوس بیا د متبوعه حکومت په توجه د هلمند د سیمې او لښکر ګاه په آبادۍ بیا ګوتې پوري شوي دي او امید سته چه بیا هغه خپل جلال او ابادۍ ته ورسېږي او د افغانستان دغه برخه بیا د دې ملك یوه سرسبزه او حاصل خېزه برخه و ګرزي.

د لښکر ګاه اوسنی عمارات چه د پخوانی زړو عمارانو و شمال ته په ډېر ښکلي او ماډرن صورت شروع شو یدی اوس د هلمند د ناوی د انکشاف مرکز دي .

باید د مطالعاتو په حیث ایك ونه کړی.

دوم حالت د لیکوال په ملکه او اختراع یا ایجاد اړه لري چه دده نه ملکه او خپل اقتدار د خپلې لیکنې په لاس کې وي او هره موضوع یا هر مضمون مطلق د خپله ذوقه او د خپلې قریحې او حوصلې څخه راوباسي. او مطالعات ئې ځني معلوم. او هر څوك په پوه شي چه دغه لیکوال دا مضمون او نور مضامین یا هره موضوع خاص په ده. او دده په ملکه اړه لري، او بل چا ته تکیه نه کوي، او اقتفائي نه ده نه د بل چا څخه سرقت یا انتخاب

اول دول لیکوال لاوم او دو نه دوس ښتن نه بلل کیږي او له خپله حده څخه نور سیر نشي کولای د بل فکر او د بل پر ګامو رهی دی.

او دریم د ملکې خاوند. کولای شي چه مستقلاً په هره خوا او هره موضوع کې د خپل روزلی عقل او طبیعت څخه کار واخلي او خپله لیکنه داسې ځرګندده کې چه هر څوك ومني چه دا لیکوال او لیکنه د ده د مبتني پر بو ایجاد او اختراع ده چه دا حالت داوه‌ني عصر امري خاصه او ممیزه بلل کیږي.

د اورو نوري ژوند هم په اول کې د پر ساده او ابتدائي، او لکه زموږ حالات او وضعیات لیکن په تدریج دو نه پر مخ ولاړه چه اوس مخترعین او موجدین دو نه پکښې د پر شره چه په ملو کې ممکن نه وی د اختراع قابلیت او قوت داری داځکه چه دوی تر بو وخته د مطالعاتو او مشاهداتو څخه، ددې او دهغه کار اخستی. وروسته ئې فکر وکی چه ولې خپل ځان ونه روزل شی. چه مستقلاً بو څه ځني پیدا شی.

موږ هم دغه دول ملکه او استعداد نه لرو چه پخپلو مفکورو او عقولو کې ئې وروزو او بوازی قانع نه شو بلکې چه یا تقلید وکو، یا اقتفا یا د بل وسرمشق ته ځیر ځیر وګورو، یا د بل پر ګامو دو نه رهی واوسو. چه آخر موږ ته کم حالت نوی ثابت او د بل ګامونه را پسی حساب وی. و بس.

لایق او پوه انسانان کله یدی راضی کیږي، هر شی چه له ده څخه او چه ددوی خوښ ئې لری په استثنا د پیکاره وکړو چه هغه نو کټ تول عمر په نامشروع تقلید اخته و اخته بوی. ولی یدي چه ده انرژی خپله دا دول روزلی ده، چه او قوه فعاله ئې تقلید او د بله څخه استفاده ده، او دا دول استفاده یا حقیقت کې، په آخر کې د ده د بی سرمایګی ذریعه ده. که چیری څوك فکر واری د تقلید وختو نه، او حد باید وپیژنی چه کله معقول او کله نا معقول ثابتیږي.

په خاتمه کې نور څه عرض وشی پخپله په هر څه پوهیږي که چیری فکر وکی.

# د تيري مياشتي غټ خبرونه



جلالتمآب ډاکټر سکارنو

څرنګه چه د مخه پېش بيني شوي وه د معظم ټولواك په بلنه داندونيزيا جمهور رئيس جلالتمآب ډاکټر عبدالرحيم سکارنو د خپلو ورسره کسانو سره د پنجشنبي په ورځ د ثور پر ۲۸ نېټه د سهار پر (۹) بجو او (۱۵) دقيقو په افغانستان کې د (۲) ورځو اوسېدو کې او مېلمستيا په غرض و کابل ته را ورسېدى د خواجه رواش پر هوائي ډګر ني د معظم ټولواك اعلحضرت پداسې حال کې هر کله ورته وشو چه والاحضرت مارشال شاه وليخان غازي د کابل فاتح، ښاغلى سردار محمد داؤد صدراعظم، د ملى شورا رئيس، د صدارت عظمى معاونان، لوی درستيز په کابل کې د اندونيزيا لوی سفير، ښاغلى د تجارت وزير، د تشريفاتو عمومي آمر، د کابل والي، د کابل ښاروال او د سلطنتي تشريفاتو رئيس، د شاهانه ذات سره ملګري وو دادوي ورځي د جلالتمآب ډاکټر سکارنو دلته ښه په ګرمجوشۍ هر کله وشو او د ثور پر ۳۰ نېټه داطريش په نيت له افغانستانه رهى شو او بوه ګډه اعلاميه د معظم ټولواك او جلالتمآب ډاکټر سکارنو له خوا په لاندي ډول خپره سوه

۱- دافغانستان د پاچا اعليحضرت محمد ظاهر شاه د بلني پر اثر داندونيزيا جمهور رئيس جلالتمآب ډاکټر احمد سکارنو او د هغه محترمو ملګرو د ۱۹۶۱ کال د مي د مياشتي له ۱۸ نېټي څخه تر ۲۰ نېټي پوري افغانستان ته رسمي مسافرت وکړ او دافغانستان د حکومت او خلکو د صميمانه هر کلي او د ورورولى د تودو احساساتو سره مخامخ شول. د دغه مسافرت په ترځ کې د دواړو ملکو مشرانو موقع وموندله چه پادپره دوستانه او صميمانه فضا کې د دواړو خواؤ پر مربوطو مسئلو او دبين المللي پېښو په باره کې تبادل افکار وکړي.

۲- د دواړو ملکو مشرانو بو پلا بياد پطرفو ملکو د مشرانو د تجويز شوي جرګې په نسبت سپانسرشپ ته خپل تياري څرګند کړ او هغي مقدماتى ټولنى ته د خپلو نمايندګانو د لېږلو سره موافقه وکړه چه د ۱۹۶۱ کال د جون په مياشت کې به قاهره کې کېږي.

۳- د دوو ملکو مشرانو د استعمار او امپریالیزم د هر شکل پر ضد د خپلو مجاهدو د دوام، د ملکرو ملتو د منشور او په بانډونګ کی د آسیائي او افریقائي ملکو د جرګی د اساساتو د سرنوشت د ټاکلو د حق په وړه ملاتړ نه یو ځل بیا خپله اراده ښکاره کړه، د افغانستان پاچا اعلیحضرت د الویدیځ ایریان په باره کی د اندونیزیا د مشروع حق په نسبت د خپل حکومت ملاتړ او د دغی مسئلی د عادلانه او ژر حل په نسبت ئې خپله هیله ښکاره کړه.

۴- په دغه امر په اتفاق سره چه عمومي پیشرفت او انکشاف یوازی د سولی په رڼا کی ممکن دی د دواړو هیوادو مشرانو هیله وکړه چه په نژدی آینده کی به عمومي او پوره خلع سلاح باندی موافقه وشی علاوه پردی دوی تقاضا وکړه چه مربوط هیوادونه دی د ملتو تر منځ د حسن تفاهم د انکشاف په غرض د اتومي چاودنو د سم دستی قطع کولو سره موافقه وکړی.

۵- د دواړو هیوادو مشرانو د الجزایر د موقتي حکومت او د فرانسی د حکومت تر منځ کنفرانس د انعقاد په هر کلی کړی دی او هیله ئې ښکاره کړه چه دغه کنفرانس د الجزایر د بشپړ حاکمیت د حق په تامین منتج شی

۶- د دواړو هیوادو مشرانو د هغه توافق نظر او ورور ګلوۍ د علایقو سره خپله قدر دانی ښکاره کړه چه د دوی د هیوادو تر منځ موجود دی او افغانستان ته د جلالتماب داکتر سکارنو د سفر د ښو هغا... او د ټینګیدو او زیاتیدو د پاره ګټور او موثر ګام وبلل شو.

۷- د اندونیزیا جلالتماب جمهور رئیس د افغانستان پاچا اعلیحضرت ته د اندونیزیا ته د تګ بلنه ورکړه. د افغانستان پاچا اعلیحضرت دغه بلنه په خوښی سره ومنله.

* * * * *



ښاغلی غلام حبیب (نوابی)

د ملی شورا د (۱۱) دوری د رئیس د ټاکلو د پاره د نور پر (۲۵) نیټه د ملی شورا د وکیلانو غونډه وکړه او د لغمان د وکیل ډاکتر عبدالظاهر ئې د رایو په اتفاق د دغی دوری د رئیس په حیث وټاکی.

* * * * *

ښکاره که چه څه موده پخوا د دولتي مطبعی عالی شورا غونډه کړی او د شهر غـان د اعلی حکومت د باره ئې د یوې مطبعی او نشراتی موسسی تاسیس تصویب کړی ؤ، په هم هغه سیمه کی د اموسسه د ښاغلی غلام حبیب (نوابی) په آمریت تاسیس او یوه جریده ئې د نور پر (۲۳) نیټه د (دیوی) په نامه خپره کړه.



ښاغلی محمد خالد ( روښان )

د مطبوعاتو د مستقل رئیس په پیشنهاد او د وزیرانو د عالي مجلس په تصویب او د معظم اعلیحضرت په منظورۍ د اصلاح د ورځپاڼې د مؤسسې آمر او د باختر آژانس د ریاست کفیل ښاغلی محمد خالد روښان د مطبوعاتو د مستقل ریاست د معاون د کفیل په حیث د ښاغلي محمد ارسلان د سلیمي په عوض کې چه هغه بل کار ته په نظر کې دی وټاکل شو.

* * * * *

ښاغلی غلام حیدر عدالت د کرهڼې د وزارت کفیل چه وقاهرې ته د بین المللي زراعتي نندارتون د کتلو دپاره د هغه ملك د کرهڼې د وزیر په بلنه مصرته تللی ؤ د ثور پر دوهمه نېټه پر ۱۲ بجو بیرته په الوتکه کې کابل ته راغی ښاغلي د کرهڼې وزیر د قاهرې، بیروت او تهران څخه یو شمیر میوه لرونکي بوټي، تخمونه، ربښې او دول دول ګلان د ځان سره راوړي دي.

* * * * *



ښاغلی غلام حیدر (عدالت)

د چکوسلواکیا د جمهوري دولت د پوهنې وزیر داکتر کاهو دا د ثور پر (۳) د غرمې وروسته پر یوه بجه او (۱۵) د قیقو د یوه هیئت په مشرۍ په الوتکه کې کابل ته راغی او دلته ئې د مملکت د څو شخصیتو له خوا هر کلی وشو نوموړی په سله څلورو ورځو چه په افغانستان کې ئې د یوه میلمه په حیث تیرې کړې بیرته د خپل هیواد وخوا ته ولاړ.



ښاغلی جان کېنیډي

په تیرۀ میاشت کې یوه مهمه پېښه د امریکا د یوهانو له خوا خارجي فضا ته په توغندي کې د یوه انسان لېږل وو چه بېرته روغ رمټ را کښته کړه شو. دا کار د جان کېنیډي د جمهوري ریاست په وخت کې وشو. زموږ د ګرانې صدر اعظم ښاغلي سردار محمد داؤد له خوا د نوموړي جمهور رئیس په عنوان یو تبریکي ټلګرام هم مخابره شو.

* * * *

د تېر په ۲۶ نېټه د جنوبي کوریا د (سیول) په ښار کې یوه نظامي کودتا وشوه او کودتا کوونکي په سله یو لږ نیتو یږدي بریالي شوه چه د ټولو چارو واګې په لاس کې واخلي د کودتا مشر د جنوبي کوریا لوی درستیز دی چه پر ټولو چارو او د هیواد پر حالاتو مسلط شوی دی. په یوه اعلامیه کې خبر ورکړ شوی چه د کودتا څخه مطلب د خرابکارۍ سره مبارزه، د هیواد د اقتصادي حالاتو ښه کول، د کوریا یووالی او د امریکا سره زیاته دوستي ده.

* * * * *

په الجزایر کې څلورو تنو متقاعد جنرالانو د حکومت پر خلاف اغتشاش کړی ؤ د الجزیرې د ښار ټول ملکي مامورین یې بندیان کړي او د ښار ټوله اداره یې په لاس کې اونیولې ؤ د دغو کسانو د فرانسې د جمهور رئیس پر خلاف تبلیغات کول، خو دې کودتا دوام ونکړ او ځینې اغتشاش کوونکي فرار یا ونیول شوه او بندي تنو کسه دا کودتا ناکامه کړه شوه.

باختر





والاحضرت مارشال غازی شاولیخان د
کابل فاتح او د آزادۍ دلاری مجاهد



مرحوم شاه محمود خان غازی سپه سالار
د پیوار فاتح

دملتونو دافرادو له خوا په صداقت سره وبالل شی هغه وخت نو د ملی استقلال اساسونه هم ټینګیږی او د زمانی د حوادثو د پېښېدو په وخت کښی د ملی آزادۍ پیکر (پېژی) څه صدمه لیدلای نشی د استقلال ساتنه او بابېنت نړه ژلو دمخه په اقتصادی او کلتوری برمخ تګ پوری تړلی دی په ننی عصر کښی کوم هیوادونه چه اقتصادی خپلواکی نه لری د هغوی اجتماعی او سیاسی آزادۍ هم مصداق پیدا کولای نشی ځکه تر هغو چه د یوه ملت د ژوندانه سطح لوړه نشی دافرادو د شخصیتونو انکشاف او د ځان پېژندنی حس هم نه حاصلیږی هغه وخت د حریت اصل په تولنو کښی بشپړ کیدای شی چه اقتصادی عدالت په وجود راشی او نابوهی له منځه ورکه شی. ځای د ډیر شکر دی چه پښتون ملت ژوندانه دی سترو اساسونو ته متوجه شوی دی او په همدی لار کښی د خو کلونو راهیسی خپل کوښښ جاری ساتی موږ په دا سی حال کښی چه د خپل استقلال او ملی آزادۍ د یاره جشنونه نیسو د دنیا سوله او امنیت هم د لوی خدایه غواړو.

ژوندی دی وی زموږ ګران تولواک د استقلال ساتندوی تل دی وی زموږ خپلواکی

